




عبدالباري جهاني ۲۰۱۷/۰۳/۲۵

# اخوند درویزه او ارشادالطالبین

دویمه برخه

## خُرافات:

څه کم دېرش کاله به کېږي چې د پېښور له یوه واړه کتاب پلورنځي څخه مي د ارشادالطالبین کتاب په ډېره ارزانه بیه واخیست. فکر مي کاوه چې د مخزن او تذکرت الابرار په څېر به، د پښتنو په باب، که سم نه وي نو ناسم، تاریخي او اجتماعي معلومات ولري. خو په کتاب کي زما د انتظار په خلاف داسي موضوعات راغلي ول چې په تبصره نه ارزېدل. خو څرنګه چي دا کتاب د پښتنو د یوې مهمي تاریخي مرحلي یوه مطرح او مهم شخصیت لیکلی دی نو باید چي پر ټولو برخو یې یوه لنډه تبصره وسي، او ضمناً وکتل سي چي ځینو مشهورو کسانو په ځینو مشهورو کتابونو کي څه لیکلي دي.

شیخ فریدالدین شکرګنج خپل یو مرید خاورو ته وسپاره؛ او خاورو ته له سپارل کېدلو سره سم یې داسي فکر خراب سو چي رنګ یې تغییر وکړ. کله چي یې مریدانو پوښتنه ورڅخه وکړه چي شیخه ولي؟ ده ورته وویل چي مرید مي ګناه کار و، په قبر کي یې عذاب ورکاوه؛ ما یې شفاعت وکړ، خو لا مي غوښتنه نه وه تمامه کړې چي قطب عالم را ورسېدی، هغه لا په شفاعت لګیا وو چي شیخ معین الدین چشتي را ورسېدی، شیخ لا غوښتنه پوره کړې نه وه چي د شیخ عثمان هاروني د ځپلیو ږغ واورېدل سو. هاتف پر ملایکو ږغ وکړ چي تښتئ! که لیوني درته وکتل ټولي به اور واخلی.مریدانو یې ورته وویل چي که په شیخ عثمان هاروني هم کار نه وای سوی نو بیا دي څه کول. شیخ ورته وویل چي بیا نو حضرت مصطفی صلعم پخپله حاضرېدی. (هغه کتاب ص ۲۸۹)

اخوند درویزه نه یوازي د حق متعال ج د ارادې په خلاف عمل کوي؛ ځکه هغه هاتف چي پر ملایکو ږغ کوي چي تښتئ! هغه پرته له خدای تعالی بل څوک کېدلای نه سي. او تر څنګ یې رسول صلعم ته سپکاوی کوي او د یوه ګناه کار مرید قبر ته یې رابولي. زه یقین لرم چي افضل خان ختک به دا کتاب نه وو لوستی کنه نو د خپل نیکه خوشحال خان په مقابل کي به یې د اخوند درویزه دفاع نه وای کړې.

اخوند درویزه د یوه حدیث په حواله، چي د کتاب نوم یې نه اخلي، وایي چي په دوزخ کي، د اور په یوه لوی صندوق کي، یو مار دی چي یولک سرونه لري، په هر سر کي یې یو لک مخونه دي، په هرمخ کي یې یو لک خولي دي، په هره خوله کي یې یو لک غاښونه دي او دا مار یې هغه چاته د عذاب لپاره ساتلی دی چي شراب خوري او یا قمار کوي لکه شیر بز او قطار!! دغه راز په دوزخ کي د مارانو او لړمانو صندوقونه دي چي د هر لړم اوږدوالی یې د ځلوېښتو کالو لار ده (هغه کتاب ص ۴۱۰)

اوس نو که یو سړی په ورځ کي اته ساعته تګ وکړي او په ساعت کي بېخي عادي واټن، چي درې میله کېږي، ووهي نو ځلوېښت کاله وروسته به یې ۳۵۰۴۰۰ میله فاصله وهلې وي. په داسي حال کي چي د ځمکي د محیط یا استوا اوږدوالی څه کم دېرش زره میله دي. د دې لړمانو اوږدوالی باید د ځمکي د محیط څه کم دوولس چنده سي. هغه مار چي اخوند یې تعریف کړی دی د دنیا تر هر ډول لوی غره غټ دی او انسان د یوې ذرې قدر هم نه ورته ښکاري. سړی نه پوهېږي چي اخوند د دغه مار او هغه لړم په باب چي د ځمکي دوولس چنده جسامت به ولري یوه شبیه فکر کړی دی کنه. د ګناه کار بنده د عذابولو لپاره یو عادي مار یا څو عادي ماران کفایت کوي. دونه لوی مار او لړم ته، چي انسان به، د کوچني والي له امله، بېخي ونه لیدلای سي څه ضرورت دی؟

تر دې لا په زړه پوري یې یوه بله کیسه ده چي د کتاب حواله نه ورکوي او وایي چي ابراهیم خلیل الله هیڅ وخت له مېلمه پرته روژه نه ماتوله. یو وخت درې ورځي پرله پسي مېلمه پیدا نه سو او دریمه ورځ یې روژه مات وکړ. خپل ځانته حیران سو چي بل به هم داسي څوک وي؟ جبرائیل امین ورته وویل چي په دښت کي یو بل درویش دی هغه ته ورسه. کله چي خلیل الله ع دښت ته ووت، هلته یې یو درویش ولیدی چي ځلوېښت ورځې یې روژه نه وه ماته کړې او په هغو دوو انارو یې روژه ورسره ماته وکړه چي د دوی لپاره له غیبه حاضر سوی وو. درویش ورته وویل چي تر ده یو بل پرهېز ګاره هم سته. کله چي هغه بل درویش ته ورغی نو هغه ورته وویل چي دوې میاشتي کېږي روژه یې نه ده ماته کړې، راسه چي د دښت په وښو روژه مات وکړو. یوه بل درویش ته ورغی؛ هغه ورته وویل چي درې

مياشتي کېږي روژه يې نه ده ماته کړې. راسه چي يو ځاى روژه مات وکړو. سمدستي د هوسيانو يوه گله پيدا سوه. شيخ يوې هوسى ته امر وکړ چي حلاله سي. هغه حلاله سوه، بريانه سوه، او د دوى مخي ته پر دسترخوان باندي کښېښودله سوه. کله چي دوى روژه مات وکړ، شيخ هوسۍ ته وويل چي ژوندۍ سه. هغه ژوندۍ سوه او د گلې سره ملگرې سوه. ابراهيم خليل الله ورته وويل چي ستا دونه لوى مقام دى؛ ماته هم يوه دعا وکړه. شيخ ورته وويل چي ځلوېښت کاله کېږي دعا کوي او خواست يې نه پوره کېږي. ده پوښتنه وکړه چي دا څرنگه خواست دى. درويش ويل يوه ورځ مي په دښت کي پنځه سوه رمې وليدې؛ له هري رمې سره پنځه سوه شپونيان ول، له هر شپانه سره د سرو زرو لرگى وو، او له هر شپانه سره پنځه سوه سپي ملگري ول چي د هر سپي په غاړه د سرو زرو غاړگۍ وه. ما پوښتنه وکړه چي دا رمې د چا دي؟ چا راته وويل چي دا د ابراهيم خليل الله دي. ما په هغه ورځ خواست وکړ رچي د خداى خليل مي ليدلى واى، او د هغې ورځي ځلوېښت کاله کېږي. خليل الله ورته وويل چي هغه زه يم. شيخ شکر وکيښ او ځاى پر ځاى يې ساه ورکړه. (هغه کتاب ص ۲۲۱)

لومړى خو په هيڅ آسماني کتاب کي په شواروز کي تر يوې ټاکلي مودې زياته روژه نيول نه دي راغلي. ځلوېښت، شپېته او نيوي ورځي خو هلته پرېږده. د هوسۍ حلالېدل، بريانېدل او خوراک ته تيارېدل به د اولياوو کرامت وي خو د هوسۍ بيرته ژوندي کول يوازي د خالق متعال ج کار دى. ويسأ لونک عن الروح قُل الروح من امر ربّي. ترجمه: ستا څخه د روح په باره کي پوښتنه کوي؛ ته ورته ووايه چي دا يوازي زما د رب کار دى. د روح بيرته ورکول يوازي په خداى تعالى اړه لري؛ هر څوک چي د روح ورکولو دعوه وکړي، د کلام الله سره مخالفت کوي.

له پنځو سوو رمو سره د شپونيانو شمېر دوه سوه پنځوس زره ته رسېږي. د سپيو شمېر يو سل او پنځه ويشت ميليونه کېږي. د هرشپانه سره د سرو زرو لرگى او د هرسپي په غاړه د سرو زرو د طوق تصور يوازي اخوند درويزه کولاى سي. او چي لږترلږه د هرو شلو پسونو سره يو سپى ملگرى کړو نو د پسونو شمېر به يې دوه ميليارده پنځه سوه ميليونو ته ورسېږي. په دغه شمېر شپونيان، سپي او پسونه د نړۍ په هيڅ دښت کي نه ځايېږي او بله خبره دا ده چي د ابراهيم خليل الله زمانه لږترلږه څلور زره کاله پخوا وه او د ټولي نړۍ د پسونو شمېر اوس حاضر د يو ميليارډ په شاوخوا کي دى.

قرآن شريف د ابراهيم خليل الله د شته منيو ذکر نه کوي؛ او د بتخانو د ړنگولو، له نمرود او کفارو سره د هغه د مبارزې، ټينگي عقيدې او ايمان څخه د پند اخيستلو بيان کوي. خو تورات وايي چي ابراهيم خليل الله او د هغه وراره لوط عليه السلام دواړو ډېرپسونه او څاروي درلودل او د گوروانانو ترمنځ به يې، پر څړځايونو باندي، شخړې منځته راتللې. ابراهيم خليل الله له لوط عليه السلام څخه وغوښتل چي د جنگونو د مخنيوي لپاره يوې بلي سيمى ته کوچ وکړي او کنه نو دى به بل ځاى ته کډه وکړي. لوط عليه السلام د اوردون د سيند غاړه، چي ډېره شنه او آباده وه انتخاب کړه او د سډوم ښارته يې ( چي بيا وروسته خراب سو) کوچ وکړ.

البته د دې معنى دا نه ده چي هغوى په زرگونو، سل هاوو زرو يا ميليونونو پسونه او څاروي درلودل. او يقين دى چي اخوند به دا کيسې له عوامو څخه اورېدلي وي.

کله چي سړى ارشادالطالبين لولي نو کله کله فکر کوى چي اخوند درويزه به دا کتاب حتما د عوامو او ماشومانو د سات تېري لپاره ليکلى وي، مگر کله چي په کتاب کي د پيغمبرانو، لويو وليانو او معتبرو کتابونو ذکر گوري او په ډېرو ځايونو کي په آيتونو، احاديثو استنادونه ويني په دې عقيده کېږي چي اخوند په خپلو خبرو او ليکنه کي جدى دى.

اخوند درويزه بل ځاى ليکي چي يوه ورځ رسول صلعم له جبرائيل امين څخه وغوښتل چي پخپله بڼه ځان ورته وښيي. جبرائيل امين خپل وزرونه پرانيستل او له مشرقه تر مغربه ورسېدل. حضرت رسول صلعم بېهوښه سو. وروسته يې له جبرائيل څخه پوښتنه وکړه چي داسي څوک هم سته چي تر تا لوى وي؟ هغه ورته وويل چي ميکائيل اووه سوه وزرونه لري او هر وزر يې زما د ټولوجود په اندازه دى. حضرت رسول صلعم ورته وويل چي تر ميکائيل هم غټ وجود سته هغه ورته وويل چي اسرافيل اووه سوه وزرونه لري او هر وزر يې د ميکائيل په اندازه لوى والى لري او که ميکائيل د اسرافيل غوږ ته ننوزي هغه نه په خبرېږي. عزرائيل له اسرافيل څخه په همدغه اندازه لوى دى. او د خداى تعالى ج عرش له عزرائيل څخه ډېرغټ دى. عرش شپېته زره پښې لري او له يوې پښې څخه تر بلي پوري يې ځلوېښت زره کاله لار ده. اسرافيل کوښښ وکړ چي د عرش سرته پورته سي. يوويشت زره کاله يې پرواز وکړ له پايې څخه لوړ نه سو. کله چي عرش په خپل لوى والي ونازېدى نو حق متعال ج يو مار پيدا کړ؛ عرش يې په خوله کي واخيست او ټول عرش د مار په خوله کي لکه د سپيلنيو دانه داسي ښکاري (هغه کتاب ص ص ۱۷۹-۱۸۰)

بل ځاى ليکي چي عرش الرحمن او کرسي د سرو زرو دي. پر هغوى باندي شنه چمنونه دي چي هره ورځ د دې دنيا په اندازه پراخېږي. په دې چمنونو کي براقونه دي چي د هر يوه تر پښو لاندي د دې دنيا اووه چنده مځکه لاندي

---

ده. عرش شپېته زره پايي لري چي د هري پايي تر بلي پوري څلوېښت زره کاله لار ده. تر هري پايي لاندي يې اووه زره ميدانه دي؛ له يوه ميدانه تر بل پوري اويا زره کاله لار ده. په هر ميدان کي يې زر نوراني باغونه دي. په هر باغ کي اويا زره ښارونه دي. په هر ښار کي اويازره سرايونه دي.په هر سرای کي اويا زره خوني دي. هره خونه يې اويازره کونجونه لري. په هر کونج کي اويا زره تختونه دي او پر هر تخت باندي اويا زره حوري ناستي دي( هغه کتاب ص ۱۳۹)

داسي ښکاري چي اخوند درويزه، د ايران، هند، عربي هيوادونو او نورو مسلمانو پوهانو په خلاف، د هغه وخت د جغرافيي په علم، که څه هم چي چنداني انکشاف يې لا نه وو کړی، هيڅ خبر نه وو او چي د مځکو او اسمانونو او کايناتو په باره کي يې هر څه زړه او خيال ته ورغلي او يا چي هر ځای يې هر څه اورېدلي دي هغه يې ليکلي او خپلو طالبانو ته يې وړاندي کړي دي. اخوند درويزه د دغو خيالاتو په لړ کي يو ځای ليکي چي شيطان په اوومه مځکه کي پر تخت ناست دی چي سيجين نومېږي. د هغه تخت د مځکي په اندازه لوی دی. اووه مځکي ټولي د يوې فرښتي په لاس کي دي چي هغه پخپله د مځکي او اسمان اووه چنده غټه ده. د هغې تر پښي لاندي يو ياقوت دی چي د مځکي او اسمان اووه چنده دی. ياقوت د يوه لوی غوايي پر ښکر تکيه دی. غويي پر رېګو ولاړ دی. رېګ د يوه ماهي پر شا دي. ماهی دونه غټ دی چي په غوايي خبر نه دی. په هغه درياب کي چي دغه ماهی ژوند پکښي کوي دونه غټ ماهيان سته چي اويا زره دغه راز ماهيان يې يوه ګوله ده( هغه کتاب ص ۱۴۳)

په ارشاد الطالبين کي دونه خُرافات او بېځايه، بې اساسه کيسي او معلومات راغلي دي چي يو بل کتاب ورباندي ليکل کېدلای سي. زه حيران يم چي زموږ پوهانو، په تېره بيا د ډيورنډ د کرښي پوري غاړه باندي، د سيد تقويم الحق کاکاخېل په څېر پوهانو او محققينو اخوند درويزه ته په کوم اساس متشرع عالم او حتی له ډېر درناوي د بابا خطاب کړی او اخونددرويزه بابا عليه الرحمه يې بولي او د اخوند په درناوي د هغه زوی کريمداد او د هغه لمسي ته، چي د دواړو په شعر کي د يوې ذرې خوند او کمال او حتی عادي سېلاب او قافيه نسته، د بابا خطابونه کوي. زه يقين لرم چي افضل خان ختک به هم ارشادالطالبين نه وو ليدلی کنه نو د د اخوند درويزه په باب يې د خپل دانشمند نيکه خوشحال خان ختک مخالفت نه کاوه.

سيد تقويم الحق کاکاخېل د خزينته الاصفياء په حواله ليکي چي اخوند درويزه په کال ۱۶۳۸ ميلادي کي وفات سوی دی او ۱۰۸ کاله ژوند يې کړی دی. دغه راز د اخباراولياء په حواله ليکي چي اخوند درويزه به د عمر په وروستيو شپو ورځو کي زياتره په جمالياتو کي مستغرق وو او په ځان به نه پوهېدی. يوه ورځ ډېر تږی وو. يوې نجلی ته يې چي منګی يې پر سر وو، بږغ کړل چي لږ اوبه راکړه. نجلی د حيا څخه هيڅ ونه ويل او منګی يې د اخوند مخي ته کښېښنود. اخوند ټول منګی تش کړ او په پاي کي يوه سو چي هغه اوبه نه وې تېل وه. د مخزن مقدمه ص لد

داسي ښکاري چي اخوند درويزه ډېر زيات خوراک کاوه. افضل خان ختک ليکي چي د اخوند درويزه داعادت وو چي چا به يې لاس ونه نيوی له خوړو څخه يې لاس نه اخيستی. د کابل صوبه دار مهابت خان مېلمه کړی وو. د ده له طالبانو يا نيژدې کسانو څخه څوک ورسره ناست نه وو. درويزه تر پايه ډوډۍ وخوړه. وخت د ګرمی وو، بدهضمي ورته پيدا سوه او وفات سو ( تاريخ مرصع ص ۳۴۴)

## مأخذونه:


۱: اخوند درويزه، مخزن. پښتو اکېډيمي د پېښور يونيورسيټي، ۱۹۶۹
۲: اخوند درويزه، تذکرت الابرار والاشرار. مکتبته اسلاميه محله جنګي پشاور
۳: اخوند درويزه، ارشادالطالبين. حاجي فقيرمحمد اينډ سنز تاجران کتب. نوراني کتب خانه قصه خوانی پشاور
۴:د روښان ياد، د بايزيد روښان د نړيوال سيمينار د مقالو مجموعه. پښتو ټولنه ۱۳۵۵
۵: ارمغان خوشحال.د مياسيد رسول رسا په زيار او مقدمه. يونيورسيټي بُک ايجينسي.
۶: افضل خان ختک، تاريخ مرصع. يونيورسيټي بُک ايجينسي
۷: قرآن کريم، بايبل،

8: A history of Muslim Philosophy. M.M Sharif Delhi.


پای